

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# ټولنیز لوستونه

## څلورم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ . ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

---


مضمون: ټولنیز لوستونه

مؤلفین: د تعلیمي نصاب د ټولنیزو علومود څانګې علمي او مسلکي غړي

اډیټ کوونکي: د پښتو ژبې د اېډیټ د څانګې  علمي غړي

ټولګی: څلورم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي

د چاپ ځای: کابل

چاپخونه:

برېښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af


---


د درسي کتابونو د چاپ، وېش او پلورلو حق د افغانستان اسلامي جمهوریت د پوهنې وزارت سره محفوظ دی. په بازار کې یې پلورل او پېرودل منع دي. له سرغړوونکو سره قانوني چلند کېږي.

## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدایﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند راښښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفیﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدایﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# فهرست

# لومړی څپرکی

# ټولنیز ژوند

**د څپرکي موخې**

- د ټولنې په مفهوم به پوه شي.
- انسان به د ټولنیز موجود په توګه و پېژني.
- د ټولنې په پرمختګ کې به د ټولنیزو اړیکو ارزښت تشریح کړای شي.
- د سولې، پخلاینې او انسان دوستۍ سره به یې مینه او علاقه زیاته شي.
- خپل او د نورو حقونه به و پېژني او هغو ته به درناوی وکړي.

لومړی لوست

## ټولنیز ژوند

**پوښتنه:** په لاندې انځورونو کې څه وینئ؟



د هرات د مرمرینو ډبرو فابریکه



پیردونکي او پلورونکي په بازار کې



زده کوونکي د ښوونځي په چاپېریال کې



وګړي د نیالګیو کښېنولو په حال کې

کوم انځورونه مو چې ولیدل، ټولنیز ژوند را ښیي.

انسان ټولنیز موجود دی. ټولنیز ژوند په دې معنا دی چې یو شمېر انسانان په یوه جغرافیايي ټاکلې سیمه کې سره ژوند کوي چې ګډ دین، تاریخ، دودونه او رواجونه لري.

انسانان د ټولنیز ژوند د پر مخ بیولو لپاره یو له بل سره مرسته کوي او خپلې اړتیاوې پوره کوي. انسان نشي کولای چې له ټولنې څخه لیرې او یوازې ژوند وکړي. د دې مقصد لپاره د نورو انسانانو شتون اړین دی. موږ باید په خپلو کې ښې او دوستانه اړیکې ولرو.



## فعالیت

په ډلو کې د ټولنیز ژوند په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

- ټولنیز ژوند څه ډول ژوند ته وايي؟
- د انځورونو له مخې د ټولنیز ژوند دوه بېلګې بیان کړئ؟
- موږ باید په خپلو کې څه ډول اړیکې ولرو؟



## کورنۍ دنده

د خپلې سیمې د ټولنیز ژوند په اړه یو لنډ مطلب په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# کورنۍ

**پوښتنه**

**ستاسې په آند! په کورنۍ کې کوم کسان ژوند کوي؟**



د کورنۍ غړي

**کورنۍ د کور د غړو په معنا ده چې له: مور، پلار، زامنو او لورګانو څخه جوړه شوې ده، کورنۍ د ماشومانو د ښوونې او روزنې لومړنۍ ځای شمېرل کېږي او ماشومان له مور، پلار، وروڼو اوخویندو څخه د ژوند آداب زده کوي. میندې او پلرونه ماشومانو ته د سلام ادبونه او د مشرانو درناوی ورزده کوي. د ماشومانو شتون په کورنۍ کې ژوندته خوښي وربخښي. په ځینو کورنیو کې انا، نیکه،**

**پلار، مور، زامن، لمسیان، ترونه او ترینديې یو ځای ژوند کوي، چې دا ټول د کورنۍ غړي ګڼل کېږي. پر موږ لازمه ده چې د خپل مور، پلار او مشرانو درناوی وکړو.**

**له ښو وګړو څخه ښه کورنۍ او له ښو کورنیو څخه ښه ټولنه منځ ته راځي. د کورنۍ پیاوړتیا د ټولنې د پیاوړیتوب لامل ګرځي.**



## فعالیت

په ډلو کې د کورنۍ او د هغو د غړو په اړه بحث وکړئ.



## ځواب ورکړئ

- د ماشومانو د ښوونې او روزنې لومړنی ځای کوم دی؟
- تاسې له خپلې مور او پلار سره څرنګه چلند کوئ؟
- تاسې له کورنۍ څخه څه زده کوئ؟



## کورنۍ دنده

د خپل کور د غړو دندې په کتابچو کې ولیکئ.

# د کورنۍ اهمیت

**پوښتنه**

**ستاسو په آند! ماشوم کوم شیان له کورنۍ څخه زده کوي؟**



کورنۍ د ټولنې بنسټ جوړوي، که چېرته د کورنۍ بنسټ ښه او سم وي ټولنه به هم ښه او سمه وي. ماشوم د ټولنیز ژوند اساس له کورنۍ څخه زده کوي. کورنی ژوند، ټولنیز ژوند ته د ورننوتو پېل دی. ښه کورنۍ غوره روزنتون دی، چې ماشوم په هغې کې ښه اخلاق، رښتینولي، امانت ساتنه، صبر، سخاوت، سربښندنه، خدمت او د مسؤولیت منل زده کوي. ښه کورنۍ ماشومانو ته د فکرکولو او د علم د زده کړې لارې هواروي. کورنۍ د روزنې او استعدادونو د ودې لومړنی غوره مرکز دی.



## فعالیت

په ډلو کې د لاندینۍ پوښتنې په اړه بحث وکړئ:

د ټولنيز ژوند اساس کوم ځای کې اینښودل کیږي؟



## ځواب ورکړئ

- ماشوم له ښې کورنۍ څخه کوم شیان زده کوي؟
- ماشوم د کورني ژوند اساس چېرته زده کوي؟
- کوم مهال به يوه کورنۍ پیاوړې او ځواکمنه وي؟



## کورنۍ دنده

د کورنۍ د اهمیت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د کورنۍ د غړو دندې

**پوښتنه**

ستاسو په آند! د ورځنیو کارونو سمول څه ګټې لري؟

**د کورنۍ هر غړی دندې لري. د ژوند دچارو د پرمخ بیولو لپاره د کورنۍ د غړو ترمنځ مرسته اړینه ده. پلار تل د کورني ژوند د اړتیاوو د پوره کولو لپاره زیارباسي او د ماشومانو په روزنه او د کور په کارونو کې ونډه اخلي. میندې د کور دکارونو د سرته رسولو سربېره د خپلو ماشومانو ساتنه او روزنه کوي، له کور څخه بهر دندې، لکه: معلمي، طبابت او داسې نورې پرمخ وړي. په کورنۍ کې لونې او زامن هم د خپل توان او استعداد سره سم د کور په کارونو کې مرسته کوي.**



نېکمرغه کورنۍ هغه ده چې غړي يې په خپلو کې مهربان، خواږه او يو تربله سره مرسته کوي.



## فعالیت

په ډلو کې د کور په کارونو کې د اولادونو د ونډې اخېستلو د اهمیت په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

- د کورنۍ د غړو ترمنځ مرسته کول څه اهمیت لري؟
- یوه نېکمرغه کورنۍ څنګه جوړیږي.
- میندې د کور د کارونو د ترسره کولو سرببېره، نورې کومې دندې پرمخ وړي؟



## کورنۍ دنده

هغه کارونه چې په کور کې سرته رسوئ په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# په کورنۍ کې نظم

## پوښتنه

**ستاسې په آند! په کورنۍ کې د نظم شتون څه اهمیت لري؟**

**کور د کورنۍ دغړو د استوګنې ځای دی. د سوکاله ژوند لپاره په کورنۍ کې د نظم او سمون مراعاتول ډېر اړین دي.**

**په کورنۍ کې د نظم د راوستلو لپاره باید هرڅه له استفادې وروسته په خپل ټاکلي ځای کې کېښودل شي. د کورنۍ هرغړی باید خپل شیان، لکه: کالي، بوټونه، کتابونه د کار او ښوونځي وسایل په خپل ټاکلي ځای کې کېږدي، ترڅو د اړتیا په وخت کې یې په آسانۍ سره پیدا کړي، په کورنۍ کې د نظم د راوستلو لپاره باید د کورنۍ هرغړی د خپلو چارو د سمون لپاره مهال ویش ولري، چې په هغه کې د خوب، اودس، لمونځ، د قرآنکریم تلاوت، مطالعې،**



**تفریح، ورزش، د کور د کارونو، یوله بل سره د خبرواترو او داسې نورو وخت معلوم وي.**

**باید پوه شو چې په کور کې د نظم پلي کول په ژوندکې ښه والی او آسانتیا منځ ته راوړي..**



### فعالیت

په ډلو کې د کورنۍ د نظم پر گټو خبرې وکړئ.



### ځواب ورکړئ

- د چارو د مهال وېش شتون څه گټه لري؟
- ولې باید هر شی په خپل ځانگړي ځای کې کېږدو؟
- د کومو کارونو رعایت کول په کورنۍ کې د نظم لامل گرځي؟



### کورنۍ دنده

د خپلو ورځنیو چارو د تنظیم لپاره په خپلو کتابچو کې یو مهال وېش جوړ کړئ.

# دویم څپرکی

## ښوونه او روزنه

د څپرکي موخې
- د جومات په ښوونیزه او روزنیزه ونډه به پوه شي.
- په ښوونځي کې د ښوونې او روزنې په ونډه به پوه شي.
- د ښوونځي دندې به تشریح کړای شي.
- په جومات او ښوونځي کې به له زده کړې سره مینه پیدا کړي.

شپږم لوست

## جومات

**پوښتنه:** ستاسې په آند! جومات د ماشومانو د ښوونې او روزنې په وده کې څه ونډه لري؟





**جومات د عبادت کولو، ښوونې او د مسلمانانو د شورا غوره ځای دی. دجوماتونو د ښوونې او روزنې تاریخ ډېر لرغونی دی چې بنسټ یې د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمد(صلی الله علیه وسلم) ایښی دی، په اسلامي نړۍ کې د ښوونې او روزنې بنسټ په جوماتونو کې ایښودل شوی دی.**

**پخوا به عالمانو، امامانو او پوهانو علم او پوهه په جوماتونو کې زده کوله.**

**ماشومان په ښوونځیو کې له شاملیدو څخه مخکې، د ښوونې او روزنې د ترلاسه کولو لپاره جوماتونو ته ځي. په جومات کې د پنځه وخته لمونځ اداکول اجر او ثواب لري، سربېره پر دې په مسلمانانو کې د ټولنیزو اړیکو د ودې لامل هم**

گرځي. څرنګه چې جومات د عبادت او د مسلمانانو د زده کړې ځای او مدرسه ده، نو له دې امله ټول مسلمانان باید د جومات په آبادۍ، نظافت او پاکۍ کې برخه واخلي.



## فعالیت

په ښوونه او روزنه کې د جومات د ونډې په اړه خبرې وکړئ او پایله یې یو تن د ټولګي په وړاندې نورو ته واوروئ.



## ځواب ورکړئ

- جومات د څه شي ځای دی؟
- په جومات کې د ښوونې او روزنې بنسټ چا اېښی دی؟
- پنځه وخته لمونځونه په جمعې سره څه ګټې لري؟



## کورنۍ دنده

په ښوونه او روزنه کې د جومات د ونډې په اړه یو مطلب جوړ او هغه په راتلونکي لوست کې ولولئ.

# ښوونځی

## پوښتنې

- ستاسې په آند! ښوونځی او ښوونه او روزنه په ټولنیز ژوند کې څه ونډه لري؟
- څه فکر کوئ، ښوونځی سربېره پردې چې د علم او پوهې ځای دی، نور څه اهمیت لري؟




له کورنۍ او جومات څخه وروسته لومړنی ټولنیز بنسټ ښوونځی دی چې ماشومان پکې په رسمي او منظمه توګه ښوونه او روزنه ترلاسه کوي.
ښوونځی هغه ځای دی چې په هغې کې زده کوونکي دیني، اخلاقي، علمي او ادبي ښوونه او روزنه ترلاسه کوي.

ښوونځی له دې کبله اهمیت لري چې هلته ډول، ډول علوم زده کوو او له خپلو ټولنیزو مسوولیتونو سره بلدتیا پیدا کوو. په ښوونځي کې د پوهې او علم پر زده کړې سربېره له نورو زده کوونکو او استاذانو سره پېژنو او له هغو ی سره ټولنیزې اړیکې ټینګوو. همدارنګه د ګډ ژوند، مرستې او یو بل ته د درناوي ورتیاوې لاسته راوړو.

د ګټورې پوهې او سالمې روزنې په ترلاسه کولو سره صالح او پوه انسانان ټولنې ته وړاندې کیږي، ترخو خپل ځان، کورنۍ او هېواد ته د خدمت کولو جوګه شي.

**بنسټ څه ته وایي؟**: بنسټ په لغت کې اساس او تهداب ته وایي. په اصطلاح کې، هرهغه جوړښت ته ویل کیږي چې د ټولنې د اړتیا وو د پوره کولو لپاره رامنځته شوی وي، لکه: مدرسې، ښوونځي، روغتونونه او دولتي ادارې.



## فعالیت

په ډلو کې په دې اړه چې موږ څېرته بېلابېل علوم زده کوو او له ټولنیزو مسوولیتونو سره بلدتیا پیدا کوو بحث وکړئ.



## ځواب ورکړئ

- له کورنۍ او جومات څخه وروسته ماشومان کوم بنسټ ته لاره مومي؟
- په ښوونځي کې زده کوونکي کوم شیان زده کوي؟
- ګټوره ښوونه او سالمه روزنه د څه شي لامل ګرځي؟



## کورنۍ دنده

د علم په زده کړه کې د ښوونځي د ونډې په اړه څو کرښې په خپلو کتابچوکې ولیکئ.

# په ښوونځي کې دندې

## پوښتنې

- آیا پوهیږئ! د ښوونځي هر غړی څه دنده لري؟

- ستاسې په آند، زده کوونکي باید په ښوونځي کې کومې دندې سرته ورسوي؟



په ښوونځي کې د ښوونکو غونډه

هر څوک په ښوونځي کې خپلې اړوندې دندې په خپله سرته رسوي، د بېلګې په توګه: د ښوونځي د مدیر دنده د نورو په پرتله مهمه ده. هغه دنده لري چې د ښوونځي اړیکه د زده کوونکو له کورنۍ او دولتي ادارو سره وساتي. د ښوونکو غونډې په ټاکلي وخت پیل کړي، د ښوونځي د مرستیالانو او سرښوونکو دنده د مضمونونو د مهال وېش جوړول، د درسي موادو، حاضري او ترقي تعلیم تیارول او د مدیر په نه شتون کې د ښوونځي سرپرستي او د مدیر د دندو سرته رسول هم د هغوی پرغاړه دي.

د ښوونکو دندې ټولګي ته په ټاکلي وخت تلل، د زده کوونکو له حال څخه خبرتیا، لوست ورکول، د ستونزو د حل لپاره چمتو والی او د هغوی سالمې روزنې ته پاملرنه ده.

ملازمین د ښوونځي د پاکۍ او صفایۍ دنده لري. د زده کوونکو دنده دا ده چې هره ورځ (د جمعې او رخصتیو څخه پرته) ښوونځي ته لاړشي، په خپلو زده کړو کې کوښښ وکړي. د ښوونکو خبرو ته غوږ کېږدي، له بې ځایه ناسوبتیا څخه ډډه وکړي، له ټولگي څخه په خپل سر ونه وځي، د خپل ښوونځي په زرغونیدو، پاکۍ او نظافت کې برخه واخلي. ښه زده کوونکي د مدیر، ښوونکو او ټولو زده کوونکو درناوی کوي او تل د ښوونځي په ډله ییزو چارو کې پوره ونډه اخلي، د ښوونځي مقررات عملي کوي او مسوولیت پېژندونکي وي.

د ښوونځي اداره د پورتنیو دندو سربېره مکلفیت لري چې د زلزلې او اورلگېدنې د ژغورنې مهارتونه هم زده کوونکو ته وروښايي.



## فعالیت

په ډله ییزه توگه د ښوونکي د دندو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

- زده کوونکي په ښوونځي کې کومې دندې لري؟
- تاسې د ښوونځي په کومو چارو کې برخه اخلئ؟
- د ښوونځي د سر ښوونکو دنده بیان کړئ.



## کورنۍ دنده

د ښه زده کوونکي د دندو په اړه چې څومره پوهېږئ په خپلو کتابچو کې يې ولیکئ.

# د افغانستان د پوهنې تاریخچه

**پوښتنه**

څه فکر کوئ! زموږ په هېواد کې رسمي پوهنه څه وخت رامنځته شوه؟

**زموږ په هېواد کې د ماشومانو ښوونې او روزنې له پخوا څخه شتون درلود. ماشومانو په جوماتونو او کورونو کې زده کړې کولې، لوستل او لیکل یې زده کول. د رسمي ښوونې او روزنې بنسټ د امیر شیرعلی خان د پادشاهۍ په مهال د دوو ښوونځیو په جوړېدوسره چې یو یې ملکي او بل یې نظامي و کېښودل شو.**









له هغه وروسته د (حبيبيې او حربي) په نومونو دوه ښوونځي د امير حبيب الله خان په مهال پرانيستل شول.

د اميرامان الله خان په وخت کې په افغانستان کې ښوونې او روزنې ښه پرمختګ وکړ، د نارينه وو په عصري ښوونځيو سربېره يو ښځينه ښوونځی په کابل کې د مستورات په نامه هم پرانيستل شو. د امير حبيب الله کلکاني په پاچاهۍ کې ښوونځي وتړل شول. بيا د محمد نادر خان په وخت کې د ښوونځيو دروازې د زده کوونکو پر مخ خلاصې شوې. د محمد ظاهر شاه په وخت کې ښوونې او روزنې ډېر پرمختګ وکړ. د وخت په تېرېدو سره چې په هېواد کې يو لړ پېښې را منځ ته شوې، د پوهنې نظام تر ټولو زيات زيانمن شو. په هېواد کې د ډېرو بدلونونو او د نوي نصاب په منځته راتلو سره اوس زموږ د ښوونې او روزنې سيستم د غوړېدو په حال کې دی. د دولتي ښوونځيو او پوهنتونونو سربېره په لس ګونه خصوصي ښوونځي او پوهنتونونه د هېواد په مرکز او ولاياتو کې تأسيس شول، چې دا په هېواد کې د ښوونې او روزنې د پرمختګ ښکارندوی دی.



## فعاليت

په ډلو کې د لوست د عمده ټکو لنډيز په څوکرښوکې وليکئ.



## ځواب ورکړئ

- په پخوا وختونو کې زموږ په هېواد کې ښوونه او روزنه په څوډوله ترسره کېده؟
- د حبيبيې ليسه د کوم پاچا په وخت کې پرانيستل شوې ده؟
- ښځينه ښوونځی د لومړي ځل لپاره د چا په وخت او په کوم ځای کې پرانيستل شو؟



## کورنۍ دنده

د کورنۍ د مشرانو په مرسته د هغو کسانو لست تيار کړئ چې ستاسو له ښوونځي سره يې مادي او معنوي مرستې کړې دي، بيا يې په ټولګي کې نوروته وړاندې کړئ.

# دریم څپرکی

## کلی

**د څپرکي موخې**

- په کلي کې به د ژوند سره بلد شي.
- کليوالی کسبونه او لاسي صنعتونه به زده کړي.
- د کرنې د چارو ډولونه به بيان کړای شي.
- د مالدارۍ ګټې به درک کړي.
- د کرنې او مالدارۍ سره به مينه پيدا کړي.

لسم لوست

# په کلي کې ژوند

**پوښتنې**

- څه فکر کوئ! خلک په کلي کې په کوم ډول ژوند کوي؟
- ستاسو په آند، د کلي ژوند له ښاري ژوند سره څه توپير لري؟



د کلي انځور

کلی د ښار په پرتله کوچنی دی او نفوس يې له ښار څخه لږ وي. د کلي خلک په کرنه، مالدارۍ او لاسي کارونو بوخت وي چې همدا کسبونه د کلي د اقتصادي شتمنيو سرچينې جوړوي. په کلي کې ژوند کول د ښار په پرتله ساده دی، په کلو کې، باغونه او ډول ډول ونې وي. له دې کبله د کلي هوا پاکه او په زړه پورې وي او خلک يې د ښه صحت او روغتيا خاوندان دي.

د کلي خلک ډېر زيارکښ، مېلمه پاله، مهربانه او يو له بل سره د ورورۍ او دوستۍ اړيکې لري.

په کلي کې ټولنيز ژوند د مرستې او همکارۍ پربنسټ ولاړ دی او خلک يو د بل په غم او ښادۍ کې ګډون کوي. دولت د کلو د خلکو د ژوند د ښه کېدلو، د روغتيايي، ښوونيزو، کرنيزو، اقتصادي ښو خدمتونو په موخه د کلو د پراختيا وزارت جوړ کړی دی.



دولت دنده لري چې د طبيعي پېښو،لکه: زلزلې،طوفان، اورلګيدنې او داسې نورو په اړه خلکوته پوهاوی ورکړي، چې مخکې له مخکې د هغو په وړاندې چمتو شي او همدارنګه د پېښو د رامنځته کېدلو په وخت کې زيانمنو خلکو ته مرستې ورسوي.



## فعاليت

د کلي خلک زياتره په کومو چارو بوخت وي؟ په دې اړه په ډلو کې سره خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

- د کلي د اقتصادي عوايدو اساسي سرچينې څه شی جوړوي؟
- ولې د کلي خلک له ښې روغتيا او سلامتۍ څخه برخمن دي؟
- د کلو د خلکو د ښه خدمت لپاره د دولت په چوکاټ کې کوم وزارت جوړ شوی دی؟



## کورنۍ دنده

د کليوالي ژوند په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# کلیوالي کسبونه او لاسي صنعتونه

## پوښتنې

- څه فکر کوئ! په کلي کې څه ډول کسبونه او لاسي کارونه دود دي؟
- ستاسو په فکر، زموږ د هېواد کلیوالي لاسي صنعتونه کوم دي؟



د کلو اوسیدونکي زیاتره د بزګرۍ، بڼوالۍ او مالدارۍ په چارو بوخت وي، خو د هغو تر څنګ ځینې کسان د خپلو کلیوالو د اړتیاوو د پوره کولو لپاره ځانګړي کسبونه او لاسي کارونه هم سرته رسوي، لکه: پښګري، ترکاڼي، کولالي، خټګري، ټټاري، زرګري، حلبي سازي همدارنګه د پوزي، غالۍ، ټغر، سترنجۍ، شال، لونګۍ، جاکټ او شړۍ اوبدل، خامك او چرمه ګنډل او داسې نور. درانه کسبونه، لکه: پښګري، خټګري، ترکاڼي او داسې نور د نارینه وو کار دی او لاسي کارونه، لکه: خامك ګنډل، چرمه ګنډل او داسې نور زیاتره ښځې ترسره کوي. ځینې لاسي صنعتونه، لکه: غالۍ، ټغر او د خامك ګنډنې ځینې ډولونه د هېواد د صادراتو مهمه برخه جوړوي. ځکه چې د

کلیوالو کسبګرو تولید ډېر ابتدايي او ساده وي او د خپلو کلیوالو ټولې اړتیاوې نشي پوره کولای، نو له همدې کبله د کلي خلک خپلې اړتیاوې له خپلو نژدې بازارونو څخه ترلاسه کوي.او د لاسي صنايعو محصولات په شاوخوا او لېرې بازارونو کې خرڅوي.



## فعالیت

په ډلو کې د لوست غوره مطلبونه په لنډه توګه ووایاست.



## ځواب ورکړئ

- د لاسي کارونو کوم ډول تولیدات زموږ د هېواد د صادراتو مهمه برخه جوړوي؟
- په کلو کې ښځې کوم ډول کلیوالي کسبونه او لاسي صنایع پرمخ وړي؟
- په کلو کې نارینه په کوم ډول کسبونو بوخت وي؟



## کورنۍ دنده

د خپلو مشرانو په مرسته دکلیوالي کسبونو او لاسي صنعتونو ګټې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په بل درسي ساعت کې يې خپلو ټولګیوالو ته ولولئ.

# په کلو کې کرنه

**پوښتنې**

- ستاسو د کلي مهم کرنيز محصولات څه شی دي؟

- کله تاسې د کرنې په چارو کې له خپلې کورنۍ سره مرسته کړې ده؟

**زموږ د هېواد زياتره خلک په کلو کې ژوند کوي، د کلي هوا پاکه او خاوره يې د کښت او کرنې لپاره برابره وي. د کلي خلک زياتره په کرنې او مالدارۍ بوخت وي. کرنيز او حيواني محصولات د کلي د اقتصاد بنسټيزه برخه جوړوي. زموږ گران هېواد افغانستان يو کرنيز هېواد دی چې د هغې ځينې پيداوار په لاندې ډول دي:**

**۱- غَلې دانې، لکه: غنم، وريجې، وربشې، جوار او...**

**۲- بقول(پلي لرونکي نباتات)، لکه: لوبيا، نخود، مشنگ، باقلي او مې(ماش).**



په غوايانو يوې



په تراکتور يوې

**۳- غوړي لرونکي تخمونه، لکه: پندانه (پنبه دانه)، کونځلې، زغر، شرشم، زيتون او لمر گلی(آفتاب‌پرست).**

**۴- طبي بوټي، لکه: زعفران، هنجه، باديان، زنکۍ (زيره)خوږه وله او...**

**۵- قند لرونکي بوټي، لکه: گني، چغندر او ...**

۶- تازه مېوې لکه: انګور، زردآلو، ګیلاس، آلوبالو، شفتالو، آلوچې، توت، منې، ناک، انار، خټکي، هندوانې، مالټې، نارنج، لیمو او داسې نور.
۷- وچې مېوې، لکه: بادام، پسته، غوزان، جلغوزي، ممیز، انځر او نور.
۸- د سبو ډولونه، لکه: کچالو(الوګان)، پیاز، تور بانجان، بنډۍ، کدو، فاصلیه، تورایي، ګندنه، پالک، بادرنګ، کاهو، دانیه، نعناع، ایلنی، مولۍ، سرې مولۍ هوږه، مرچ او داسې نور.
پر پورتنیو کرنیزو محصولاتو سربېره د هېواد په ځینو ولایتونو کې یو لړ ځنګلونه هم شته چې له مېوو او لرګیو څخه یې ګټه اخېستل کېږي.
وچې او تازه مېوې او ځینې طبي بوټي بهرنیو هېوادونو ته صادرېږي چې د هېواد د صادراتو مهمه برخه جوړوي، د کرنې او زراعت د اهمیت له کبله دې پایلې ته رسېږو چې کرنه او بزګري ښه با ارزښته او شریفه دنده ده او د اسلام په سپېڅلي دین کې اجراو ثواب لري.



## فعالیت

هره ډله دې د خپلې سیمې کرنیز محصولات په خپلو کتابچو کې ولیکي.



## ځواب ورکړئ

- ستاسې په سیمه کې کوم ډول بوټي او مېوې زیات اقتصادي ارزښت لري؟
- کرنه زموږ په کورني اقتصاد کې څومره ارزښت لري؟
- د افغانستان کوم ډول کرنیز حاصلات بهرته صادرېږي؟



## کورنۍ دنده

د کورنۍ په مرسته د څو طبي بوټو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# په کلو کې مالداري

**پوښتنې**

- څه فکر کوئ! په کلو کې څه ډول کورني څاروي ساتل کېږي؟
- ستاسو په آند! د څارويو محصولات څه گټې لري؟

**انسانانو له پخوا زمانو څخه د خپل ژوند د اړتياوو د پوره کولو لپاره کورني څاروي ساتلي او له هغو څخه يې گټه اخېستې ده، زموږ په هېواد کې د څارويو د ساتنې او پالنې کسب د کورنيو څارويو،لکه:وزو، پسونو،غوايانو، اوښانو، آسانو، کچرو،خرو او نورو څخه عبارت دی څرنگه چې په کلو کې د ښارونو په**



نسبت څارویو ساتلو ته زمینه ډېره برابره ده، نو ځکه د کلو خلک د خپل ژوند د اړتیاوو د پوره کولو لپاره زیاتره څاروي ساتي او د هغو له روزلو سره ډېره مینه لري.





## فعالیت

په ډلو کې د لاندې پوښتنو په اړه خبرې وکړئ.

-ستاسو په کلي کې کوم څاروي ډېر ساتل کېږي؟ نومونه یې واخلئ.

- ولې د کلي خلک د څارویو له ساتلو سره ډېره مینه لري، بیان یې کړئ؟



## ځواب ورکړئ

- کورني څاروي د کومو موخو لپاره ساتل کېږي؟
- انسانانو له څه وخت څخه را پدې خوا د مالدارۍ کسب غوره کړی دی او ولې؟
- کومو څارویو ته کورني څاروي ویل کېږي؟



## کورنۍ دنده

د څارویو د ساتلو په اړه په خپلو کتابچو کې دوې جملې ولیکئ.

# په کلو کې د مالدارۍ ګټې

پوښتنه

ستاسو په آند! د کومو څارویو له شیدو، پوستکو او غوښو څخه ګټه اخیستل کېږي؟

الله(جَلَّ جَلاَلُه) څاروي د انسانانو د ګټو لپاره پیدا کړي دي، ترڅو له غوښو، پوستکو، وړیو او وژغنو څخه یې ګټه واخلي. مالداري په کلو کې ډېرې ګټې لري.



د بېلګې په توګه: د وزو، مېږو او غواوو له شیدو څخه مستې، پیروی، شرومبې، کوچ، پنیر، چکه او کورت جوړوي. د حیواناتو له وړیو او وژغنو څخه غالۍ، ټغرونه، لیمڅي او قالینچې جوړوي. له غوایانو څخه د کرنې د ځمکو دیوې کولو او له خرو، کچرو او آسونو څخه د بار وړلو او سپرلۍ لپاره کار اخیستل کېږي. همدا راز له حیواني سرې څخه د کرنې د ښه والي لپاره هم ګټه اخیستل کېږي.

د څارویو پوستکي او وړۍ له هېواد څخه بهرته صادرېږي. څرنګه چې د اهلي څارويو ساتل د هېواد د اقتصاد په لوړوالي کې اغېزه لري، نو خلک باید د څارویو روزلو او ساتلو ته پاملرنه وکړي.



## فعالیت

په ډلو کې د مالدارۍ د ګټو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

- د څارویو له شیدو څخه کوم شیان لاسته راځي؟
- د هېواد کوم حیواني محصولات بهرته صادرېږي؟
- د حیواناتو روزنه او پالنه څه ګټې لري؟



## کورنۍ دنده

په کلو کې کوم کارونه د حیواني محصولاتو د زیاتوالي لامل کېږي، په دې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# څلورم څپرکی

## ښار

**د څپرکي موخې**

- له ښاري ژوند سره به بلد شي.
- ښاري کسبونه به و پيژني.
- د ښارونو د ډولونو توپير به وکړای شي.
- د افغانستان تاريخي ښارونه به په نقشه کې وښودلای شي.
- د نړۍ د سترو ښارونو نومونه به واخېستلای شي.
- د افغانستان له تاريخي ښارونو سره به يې مينه پيدا شي.

پنځلسم لوست

## ښاري ژوند

**پوښتنه: څه فکر کوئ! ښاري ژوند له کليوالي ژوند سره څه توپير لري؟**



د کابل ښار انځور



د هرات ښار انځور

**ښارونه، د بازارونو، سرکونو، ښاروالۍ، پارکونو، د ليدلو ځايونو، دولتي او غير دولتي ادارو لرونکي وي.**

**ښارونه د کلو په پرتله لوی وي، نو ځکه په ښارونو کې ډېر خلک ژوند کوي. څرنګه**

چې په ښارونو کې دکار او د آسانتیاوو زمینه برابره ده، له دې امله په کې بېلابېل قومونه او خلک ګډ ژوند کوي.

په ښارونو کې دولتي ادارې، ښوونځي، مدرسې، پوهنتونونه، تولیدي کارخانې، هوایي ډګر، بانکونه، سوداګریز مرکزونه او داسې نور ټولنیز او اقتصادي تاسیسات شته.

د ښار خلک په دولتي او غیر دولتي ادارو، مؤسساتو، سوداګرۍ، بازارونو، د تولید په کارخانو او نورو چارو کې بوخت وي، په ښارونو کې خلک د تګ او راتګ لپاره له موټر، موټرسایکل، بایسکل او داسې نورو څخه کار اخلي. موږ به هغه وخت یو ښه، پاک او ښکلی ښار ولرو چې هر وګړی یې د ښار په پاکوالي کې برخه واخلي.




ښاري خلک زیاتره پرکومو چارو بوخت وي؟ په دې اړه په خپلو ډلو کې خبرې وکړئ.




- ښار څرنګه ځای ته ویل کېږي؟
- په ښارونو کې د دولتي ادارو ترڅنګه نور کوم مرکزونه شته؟
- ولې په ښارونو کې ډېر وګړي ژوند کوي؟




د خپلو کورنیو د غړو په مرسته د ښار د خلکو د دندو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د ښاري خلکو کسبونه

**پوښتنه**

**ستاسو په آند! ښاري خلک په کومو کارونو بوخت دي؟**



غالۍ اوبدل



ترکاڼي



پښگري



معماري

**ښاري خلک بېلابېل کسبونه لري، لکه: پښگري، مسگري، زرگري، خټگري، ترکاڼي، کولالي، خياطي، چمياري او داسې نور چې د انسان په واسطه جوړېږي. د ښار ډېر اوسيدونکي په داسې کارونو، لکه: معلمي، طبابت، انجينري او په دولتي ادارو کې په ماموريت او داسې نورو کارونو بوخت دي. د ښار په بازارونو کې ډول ډول شيان او توکي، لکه: موټر، موټر سايکل، بايسکل، راډيو، تلويزيون، کمپيوټر**

او نور برقي سامانونه، ډول ډول ټوکران او کالي، بوټان، د کور سامان او داسې نور پلورل کېږي. یو شمېر دا شیان په ښارونو کې جوړېږي او یو شمېر یې له بهرنیو هېوادونو څخه واردېږي.



## فعالیت

په ډلو کې د ښاري کسبونو په اړه خبرې وکړئ؟



## ځواب ورکړئ

- په ښارونو کې سربېره په پښګرۍ نور کوم کسبونه شته؟
- کوم شیان په ښار کې پلورل کېږي؟
- د ښار زیاتره خلک په کومو کارونو بوخت دي؟



## کورنۍ دنده

هغه کسبونه چې ستاسو په سیمه کې شته، په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

# د ښارونو ډولونه

**پوښتنه**

په انځورونو کې کوم ډول ښارونه وينئ؟

**ښارونه د ځينو ځانګړتياوو له مخې په لاندې ډول دي:**

## صنعتي ښارونه

**هغه ښارونه دي چې توليد پکې کيږي، په دې ښارونو کې لومړني توکي په سوداګريزو مصنوعاتو بدليږي.**

## سوداګريز ښارونه

**ځينې ښارونه د راکړې ورکړې مرکزونه دي چې په عمومي ډول بندري ښارونه همدارنګه ځانګړتياوې لري.**





## فرهنګي ښارونه

**دا ډول ښارونه د علمي، فرهنګي، لوړو زده کړو او د علمي مرکزونو په درلودلو مشهور وي.**

## سیاسي ښارونه

دا ډول ښارونه په عمومي ډول مرکزي ښارونه او د اړوندو هېوادونو پایتختونه وي چې د دولت د اداري او سیاسي چارو تصمیمونه په کې نیول کېږي.

## د سیل او سیاحت ښارونه

هغه ښارونه چې ښه موقعیت، تاریخي آثار او د سیل او تفریح لپاره په زړه پورې ځایونه ولري د سیل او سیاحت ښارونه دي.

## مختلط یا عمومي ښارونه

دا ښارونه سره له دې چې صنعتي مرکزونه دي، سوداګریز، فرهنګي او تفریحي فعالیتونه هم په کې ترسره کېږي.




له پورتنیو ځانګړتیاوو سره سم زموږ په هېواد کې کوم ښار شته؟ په دې اړه په خپلو ډلو کې سره خبرې وکړئ.




- د صنعتي ښارونو ځانګړتیاوې بیان کړئ.
- سیاسي ښار(پایتخت) کومې ځانګړتیاوې لري؟
- د کابل ښار په کوم ډول ښارونو کې شمېرل کېږي؟




د کابل ښار په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# د افغانستان مهم او تاریخي ښارونه

**پوښتنه**

**ستاسو په آند؛ د افغانستان تاریخي ښارونه کوم دي؟**



**زموږ ګران هېواد افغانستان یو لرغونی هېواد دی، چې لوی، تاریخي او لرغوني ښارونه يې له بلخ (اُم‌البلاد)، هرات، باميان، کابل، کاپیسا، بست، غور، غزني او داسې نورو څخه عبارت دي. د وریښمو تاریخي لاره هم د افغانستان له ځینو ښارونو څخه تېرېدله چې د چین او هندوستان هېوادونه يې له اروپا سره نښلول. د وخت په تېرېدو سره د ژوند په بېلابېلو برخو کې پرمختګونه**

منځته راغلل او ښارونه هم پراخ شول. نن زموږ د هېواد مهم او لوی ښارونه، لکه: کابل، مزار شریف، کندهار، هرات، جلال آباد، غزني، کندز، لښکرگاه، خوست، تالقان، پلخمري، باميان، گرديز او داسې نور دي.





### فعالیت

څو تنه زده کوونکي دې په وارسره د نقشې پرمخ د افغانستان تاریخي ولایتونه، لکه: کندهار، بلخ، پروان، کندز، پکتيا، هرات ، باميان، غور او غزني وښيي.



### ځواب ورکړئ

- اُم البلاد زموږ د گران هېواد کوم ښار ته ویل کیده؟
- د وړېښمو لار کوم هېوادونه سره نښلول؟
- د افغانستان د اوسنيو پنځو مهمو او لويو ښارونو نومونه واخلئ؟



### کورنۍ دنده

د افغانستان د پخوانيو ښارونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د نړۍ لوی ښارونه

**پوښتنه**

**له تاسو څخه چا د نړۍ د یوه لوی ښار نوم اوریدلی دی؟**


د استانبول ښار


د پاریس ښار

په دې نړۍ کې چې موږ ژوند کوو، لوی لوی ښارونه موجود دي. دا ښارونه د وګړو د زیاتوالي، لوی والي، جغرافیایي موقعیت، دیني، فرهنګي، سیاسي، اقتصادي او سوداګریزو ارزښتونو له امله ځانګړیتوب لري.

د نړۍ ځینې ستر ښارونه دا دي: په سعودي عربستان کې د مکې معظمې او مدینې منورې ښارونه، په ترکیه کې استانبول، په فرانسه کې پاریس، په روسیه کې مسکو، په مصر کې قاهره، په انګلستان کې لندن، په متحده ایالاتو کې نیویارک، په پاکستان کې کراچۍ او په هند کې د ډهلي ښار او داسې نور...

دا ښارونه د علمي، فرهنګي، ورزشي مرکزونو او د سیل د ځایونو لرونکي دي.



## فعالیت

هر هېواد له خپلې پلازمېنې سره په خپلو کتابچو کې یو ځای کړئ.

| | |
|---|---|
| قاهره | د امریکا متحده ایالات |
| پاریس | انګلستان |
| مسکو | مصر |
| لندن | فرانسه |
| واشنګتون | روسیه |



## ځواب ورکړئ

- د نړۍ د دوو مهمو ښارونو نومونه واخلئ؟
- لوی ښارونه ولې د اهمیت وړدي؟
- لوی ښارونه کومې آسانتیاوې لري؟



## کورنۍ دنده

د څو لویو ښارونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# پنځم څپرکی

## زموږ هېواد

د څپرکي موخې

- خپل هېواد افغانستان به ښه وپېژني.
- ملي بيرغ به وپېژني.
- ترافيکي مقررات به زده کړي.
- د ژوند د چاپېريال په اړه به معلومات ترلاسه کړي.
- د ملي بيرغ رنګونه به تشريح کړای شي.
- د هېواد او ملي بيرغ سره به مينه پيدا کړي.
- د ژوند د چاپېريال په پاکوالي کې به زيار وباسي.

شلم لوست

## زموږ هېواد افغانستان

**پوښتنه:** په نقشه کې څه وينئ؟




افغانستان د ټولو افغانانو ګډ کور دی، خلک يې په خپلو کې ورونه او سره برابر دي، افغانستان يو غرنی هېواد دی. زياتره غرونه يې په اوړي او ژمي کې له واورو ډک وي، له واورينو غرونو څخه سيندونه سرچينې اخلي چې ښه او ښکلې

هوايي موږ ته رابخښلې ده. افغانستان پریمانه طبیعي کانونه او ذخیرې لري، لکه: اوسپنه، سره زر، سپین زر، نفت، ګاز، د ډبروسکاره، مس او داسې نور.
زموږ د هېواد سوېلي او شمال ختیځې سیمې ډېر ځنګلونه لري، زموږ هېواد د کرنې، بڼوالۍ او مالدارۍ لپاره مناسبه هوا او رڼې اوبه لري. زموږ په هېواد کې ډول ډول کورني او وحشي ځاروي شته، موږ له خپل هېواد سره مینه لرو د ورونو او خویندو په څېر یو له بل سره ژوند کوو، خپل حق او د نورو حق پېژنو او د هغو درناوی کوو. یو له بل سره لاس په لاس د خپل ګران هېواد په ساتنه او پرمختګ کې زیار باسو.



## فعالیت

په ډلو کې زموږ د ګران هېواد افغانستان په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

- زموږ د هېواد کومه سیمه ډېر ځنګلونه لري؟
- زموږ په ګران هېواد کې کوم ډول طبیعي کانونه او زېرمې شته؟
- د خپل ګران هېواد د پرمختګ لپاره باید څه وکړو؟



## کورنۍ دنده

د خپل ګران هېواد په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# ملي بيرغ

**پوښتنه**

**تاسو په ملي بيرغ کې څه وينئ؟**



**هر هېواد يو بيرغ لري چې د ملي هويت نښه يې ده. زموږ د ګران هېواد افغانستان ملي بيرغ، درې رنګه لري: تور، سور او زرغون چې له کيڼ څخه ښي خواته په عمودي ډول يو د بل ترڅنګ په مساوي توګه ځای پرځای شوي دي. دا رنګونه زموږ د هېواد په تاريخ کې ځانګړی مفهوم لري.**

**-تور رنګ زموږ په هېواد کې د ښکېلاکګرو د تېري نښه ده.**

**-سور رنګ د هېواد د خپلواکۍ د لارې د شهيدانو د سرو وينو نښه ده.**

**-زرغون رنګ د سمسورتيا، خپلواکۍ او آبادۍ نښه ده.**

د افغانستان د ملي بيرغ نښان له سپين رنگه محراب او منبر څخه عبارت دی، چې د ملي بيرغ په منځ کې ځای لري، د محراب او منبر دواړه خواوې يې په دووکوچنيو بيرغونو، د (لا اله الا الله محمد رسول الله) په سپيځلې کلمې، الله اکبر او د لمر وړانگې چې د راختلو په حال کې ليدل کيږي ښکلی شوی دی.
په لاندينۍ برخه کې يې د هېواد د خپلواکۍ نېټه (۱۲۹۸ لمريز) کال، د افغانستان نوم او په دوو څنډو يې د غنمو وږي را تاو شوي دي. ملي بيرغ د هېواد د تاريخ په اوږدو کې زموږ د خلکو د ملي يووالي، خپلواکۍ او د ځمکنۍ بشپړتيا نښه ده.
موږ د خپل هېواد ملي بيرغ ته په درنه سترگه گورو او د هغه ساتنه کوو.



## فعاليت

په ډلو کې د ملي بيرغ د رنگونو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

- د افغانستان د ملي بيرغ د رنگونو نومونه واخلئ؟
- د بيرغ شين رنگ څه مفهوم لري؟ بيان يې کړئ.
- د افغانستان ملي نښان له څه شي څخه عبارت دی؟ واضح يې کړئ.



## کورنۍ دنده

د خپل گران هېواد بيرغ په خپلو کتابچو کې رسم او بيايې رنگه کړئ.

# دولتي اداري

**پوښتنه**

**ستاسو په آند؛ دولتي اداري د کومو موخو لپاره جوړې شوي دي؟**

**هر هېواد د نظم راوستلو، خلکو ته د خدمت کولو، د اړيکو ټينګولو او د چارو د سرته رسولو لپاره، حکومت او اداروته اړتيا لري، چې دا اداري د وزارتونو او رياستونو په نامه يادېږي، لکه: د پوهنې، دفاع، کورنيو چارو، بهرنيو چارو، مخابراتو، د لوړوزده کړو، عدليې، ترانسپورت، عامې روغتيا، کرنې او داسې نور وزارتونه چې په بېلابېلو برخو کې د خلکو لپاره کار کوي.**



وزارتونه او حکومتي مهمې ادارې د هېواد په پلازمېنه کې ځای لري.

د هر وزارت استازي په ولايتونو کې د رياست او په ولسواليو کې د مديريتونو تر نامه لاندې کار کوي.



## فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو کې د دولتي ادارو په اړه خبرې وکړي او بيا دې د هغو ادارو په نومونو چې پوهېږي بيان کړي.



## ځواب ورکړئ

- هر دولت د ښه نظم راوستلو لپاره څه شي ته اړتيا لري؟
- د هر وزارت نماينده ګي په ولاياتو او ولسواليو کې تر کوم نامه لاندې  کار کوي؟
- دولتي ادارې څرنګه کولای شي چې خپلو هېوادوالوته د ښه خدمت کولو  جوګه شي؟



## کورنۍ دنده

د څو وزارتونو نومونه په خپلو کتابچوکې وليکئ.

# ترافیکي مقررات

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ چې په ښارکې د خلکو او وسایطو د تګ را تګ لپاره څه شي ته اړتیا ده؟**




**په ښارکې د ترانسپورتي وسایطو او لارویو د تګ او راتګ د تنظیم لپاره ترافیکي قواعد او مقررات شته، د ترافیکي مقرراتو رعایتول د تګ او راتګ د آسانتیاوو، د ترافیکي پېښو او ګڼې ګوڼې د مخنیوي لامل ګرځي.**



له واټونو څخه د تېریدو په وخت کې باید ترافیکي نښو، اشارو او د ترافیک د پولیس لارښوونو ته پاملرنه او د هغه مراعات وشي. په واټونوکې ترافیکي څراغونه شته چې درې رنګه لري. شین څراغ د حرکت او له واټ څخه د تېریدو، ژېړ څراغ، د حرکت لپاره د چمتووالي او سور څراغ د درېدو اشاره ده.

پلي کسان باید د تګ او راتګ په مهال له پیاده لارو څخه استفاده وکړي، ترڅو د ترافیکي پېښو څخه وژغورل شي.



## فعالیت

یو زده کوونکی دې د ښوونکي په مرسته په ټولګي کې د ترافیکي څراغونو په پام کې نیولو سره له واټ څخه تېریدل عملي کړي.



## ځواب ورکړئ

- د دې لپاره چې ترافیکي پېښنه منځته را نشي څه باید وکړو؟
- شین څراغ د څه شي نښه ده؟
- ترافیکي څراغونه کوم رنګونه لري؟



## کورنۍ دنده

د ترافیکي اشارو زېړ، سور او شین رنګ د څه شي نښې دي؟ په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

# د چاپېریال ساتنه

**پوښتنه**

**ستاسو په فکر! ونې او ځنګلونه د ژوندانه چاپېریال ته څه ګټې رسوي؟**



پاک او سمسور چاپېریال

**په ښارونو کې د وګړو او اوسېدونکو زیاتوالی د اوبو، خوراکي او د سُوَن د توکو (موادو) د ډېر لګښت او په چاپېریال کې د ځېنو انبارېدل د بېلابېلو ناروغیو لامل ګرځي،د ښار صفایي او پاکوالی د ښاروالۍ دنده ده، خو دا داسې ستونزه ده، چې د ښار په ټولو اوسېدونکو پورې هم اړه**

لري؛ له دې امله هر څوک چې په ښارونو کې ژوند کوي باید د خپل ښار په پاکوالي او سمسورتیا کې د ښاروالۍ سره په مرسته کې فعاله برخه واخلي.

مور باید د چاپېریال په ساتنه کې لاندې لارښوونې په پام کې ونیسو:

- هر کال نیالګي کینوو او چاپېریال پاک وساتو.
- خځلې او کثافات په خپل ټاکلي ځای (کثافات دانۍ) کې واچوو.
- د ونو او پارکونو ساتنه وکړو او له ماتولو څخه یې ډډه وکړو.
- په ویالو، لښتیو، پارکونو او سرکونو کې کثافات وانه چوو.
- د خپل کور یا د بل چا د کور مخې ته کثافات او خځلي وانه چوو، باید ټاکلي ځای ته یې ورسوو.



## فعالیت

په ډلو کې د چاپېریال د سمسورتیا په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

- د چاپېریال په ساتنې کې ښاروالي څه دنده لري؟
- مور څنګه کولای شو چې خپل چاپېریال پاک وساتو؟
- ناپاک چاپېریال د انسانانو په ژوند کې څه اغېزې لري؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د پاک چاپېریال د ګټو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# څلور خواوې

**د څپرکي موخې**

- د څلورو اصلي خواوو سره به بلد شي.
- د څلورو اصلي او فرعي خواوو توپیر به وکړای شي.
- نقشه او د نقشې څلور خواوې به بیان کړای شي.
- د افغانستان څلور خواوې به په نقشه کې وښودلای شي.

پنځه ویشتم لوست

## څلور اصلي خواوې

**پوښتنې:**

**- ستاسو په آند! په دغه انځور کې څه لیدل کېږي؟**

**- څه فکر کوئ، زموږ په هېواد کې قبله کوم لوري ته واقع ده؟**

**لمر هره ورځ له یوې خوا څخه راخېژي او بلې خواته پرېوزي. پخوا انسانانو د څلورو خواوو د پېژندلو لپاره د لمر له راختلو او پرېوتلو څخه ګټه اخیستله.**




**د لمر د راختلو خوا (لوری) د ختیځ (شرق) او د لمر پرېوتلو لوري ته لویدیځ (غرب) وایي. که موږ د لمر پرېوتو خوا ته داسې ودرېږو، چې شا مو د لمرخاته خواته وي، په دې صورت کې به زموږ ښي خوا ته شمال او کیڼې خوا ته به مو سویل وي. دا څلور خواوې چې موږ یې نومونه واخیستل، د څلورو اصلي خواوو په نامه یادیږي. څلور**

خواوې د قطب نما او مقناطيسي ميلې په واسطه هم ټاکلای شو.



## فعاليت

يو زده کوونکی دې خپل مخ قبلې خوا ته وګرځوي او څلور اصلي خواوې دې په تمثيل

سره عملي بيان کړي.



## ځواب ورکړئ

**۱. د څلورو اصلي خواوو نومونه واخلئ؟**

**۲. انسانان د څلورو لورو د پېژندلو لپاره له کومې طريقې څخه ګټه اخلي؟**

**۳. که تاسې مخ په لمرخاته ودرېږئ، ستاسو مخ، شا، ښي او کيڼ لاس ته به کوم لوري واقع وي؟**



## کورنۍ دنده

څلور اصلي خواوې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# څلور فرعي خواوې

## پوښتنه

ویلای شئ چې د کوټې څلور ګوټونه (کونجونه) کوم لوري راښيي؟

څلور اصلي او فرعي خواوې

| فرعي لورى | اصلي لورى | فرعي لورى |
| --- | --- | --- |
| اصلي لورى |  | اصلي لورى |
| فرعي لورى | اصلي لورى | فرعي لورى |

ختیځ، لوېدیځ، شمال او سوېل خوا ووته اصلي لوري وايي. فرعي لوري د دوو اصلي لورو په منځ کې پراته دي. یعنې هغه لورى چې د شمال او ختیځ په منځ کې پروت دي، د شمال ختیځ په نوم او هغه لورى چې د شمال او لوېدیځ په منځ کې پروت دى، د شمال لوېدیځ په نوم یادېږي، هغه لورى چې د سوېل او ختیځ په منځ کې واقع دى، د سوېل ختیځ په نامه او هغه لورى چې د سوېل او لوېدیځ په منځ کې پروت دى د سوېل لوېدیځ په نوم یادېږي.

مور د قبلې، لارو او د ځایونو د پیدا کولو لپاره له څلورو اصلي او فرعي لورو څخه ګټه اخلو.






## فعالیت

د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو په خپلو کتابچو کې پشپړ کړئ:

د شمال اوختیځ منځ ته ................................ وايي.

د ختیځ او سوېل منځ ته ................................ وايي.

د شمال اولوېدیځ منځ ته ................................ وايي.

د سوېل او لوېدیځ منځ ته ................................ وايي.



## ځواب ورکړئ

- د څلورو فرعي خواوو نومونه واخلئ؟
- د ختیځ او سویل په منځ کې کوم فرعي لوری پروت دی؟
- د شمال او لوېدیځ په منځ کې کوم فرعي لوری پروت دی؟



## کورنۍ دنده

۱- ستاسو د کورونو په فرعي لورو کې کوم ځایونه پراته دي، په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

# نقشه او د هغې ځلور خواوې

## پوښتنه

نقشې ته وګورئ او د هغې ځلور خواوې په نښه کړئ؟



د افغانستان سياسي نقشه

نقشه داسې وسيله ده، چې د هغې په واسطه د ځمکې د مخ د هېوادونو او مختلفوسيمو په اړه معلومات لاس ته راوړو.جغرافيايي نقشه موږ ته د وچو، د سمندرونو، غرونو، سيندونو، ځنګلونو، ښارونو او نورو موقعيت راښيي. نقشه ډېر ډولونه لري، لکه: طبيعي نقشه، سياسي نقشه او نور.

هغه نقشه چې غرونه اوسيندونه په کې ښودل شوي وي، د طبيعي نقشې په نامه يادېږي. هغه نقشه چې ولايتونه، ښارونه، پلازمېنې، بندرونه، ګډې پولې اوهېوادونه په کې ښودل شوي وي، د سياسي نقشې په نامه يادېږي.په نقشو کې داسې نښې

کارول کېږي چې موږ ته بېلابېل جغرافیایي مهم ځایونه او موخې رانښیي.

په ټولو نقشو کې چې ستاسې په کتاب کې دي او یا د ټولگي په دیوال پورې ځړول شوي دي، پورته یې د شمال خوا، ښکته لوري ته سویل، ښي لاس ته د ختیځ لوری او کیڼ لاس ته مو د لویدیځ لوری پروت دی.

د ځلورو اصلي او فرعي خواوو په مرسته کولای شو چې د هېوادونو ځلور خواوې معلومې کړو.


د غره نښه


د سیندونو نښه


د ښار نښه


د پلازمینه (پایتخت) نښه



## فعالیت

په خپلو ډلو کې د نقشې له مخې د جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

د افغانستان لوېدیځ ته (          ) موقعیت لري. د افغانستان شمال ته د (          ) (          ) او (          ) جمهوریتونه پراته دي. د چین د خلکو جمهوریت زموږ د هېواد (     ) خواته پروت دی.



## ځواب ورکړئ

- هره نقشه څو خواوې لري؟ نومونه یې واخلئ.
- د نقشې پرمخ ځلور خواوې یا لوري څرنگه موندلای شئ؟
- د نقشې پرمخ اصلي او فرعي لوري وښیئ؟



## کورنۍ دنده

د افغانستان ځلور خواوې د نقشې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د افغانستان څلورخواوې

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، د افغانستان څلورو خواوو ته کوم هېوادونه پراته دي؟**




**زموږ هېواد افغانستان د آسيا د لويې وچې په سويل کې پروت دی، زموږ هېواد سمندرته لاره نه لري، څلورو خواووته يې وچه ده. زموږ د هېواد شمالي ګاونډيان د تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان جمهوريتونه دي. لوېديځ ته مو د ايران اسلامي جمهوريت پروت دی. د سوېل او ختيځ پولې يې د پاکستان اسلامي جمهوريت سره د ډيورند د تحميلي کرښې په واسطه په نښه شوې دي چې د افغانستان خلک يې په رسميت نه پېژني.. زموږ هېواد په شمال ختيځه**

ښنده کې د چین له جمهوریت سره نښتی دی.

زموږ هېواد د آسیا په لویه وچه کې د خپل موقعیت له مخې ځانګړی اهمیت لري او د یوه پله په څېر د مرکزي آسیا هېوادونه د سویلې آسیا سره نښلوي.




په خپلو کتابچو کې مو د ښي لوري هېوادونه د کیڼې خوا له اړوندو جملو سره ونښلوئ.

| | |
|---|---|
| ۱- دازبکستان جمهوریت | ۱- زموږ د هېواد په شمال ختیځ کې پروت دی. |
| ۲- د ایران اسلامي جمهوریت | ۲- زموږ د هېواد په شمال کې پروت دی. |
| ۳- د چین د خلکو جمهوریت | ۳-زموږ د هېواد په لوېدیځ کې پروت دی. |




۱-افغانستان د آسیا د لویې وچې په کومه برخه کې پروت دی؟

الف- شمال

ب- ختیځ

ج- سوېل

۲-د افغانستان د ګاونډیو هېوادونو نومونه واخلئ؟

۳-د چین هېواد زموږ د هېواد کوم لوري ته پروت دی؟




د افغانستان نقشه په خپلو کتابچو کې رسم کړئ او په هغې کې د ګاونډیو هېوادونو موقعیت په نښه کړئ.

# اووم څپرکی: زموږ د هېواد اداري وېش

د څپرکي موخې:

- د افغانستان له اداري وېش سره به بلد شي.
- د افغانستان دین،ژبې او نفوس په اړه به معلومات ترلاسه کړي.
- د هېواد د مشهورو غرونو نومونه بیان کړای شي.
- د هېواد مشهور سیندونه به په نقشه کې وښودلای شي.

نهه ویشتم لوست

## زموږ د هېواد اداري وېش

**پوښتنه: کله مو فکر کړی دی، چې افغانستان څو ولایتونه لري؟**




زموږ د هېواد د ولایتونو نقشه

زموږ گران هېواد افغانستان د اداري وېش له مخې په ۳۴ ولایتونو وېشل شوی دی. هر ولایت د والي له خوا اداره کېږي. والي د ولایت واکمن دی. چې دولتي کارونه د قانون په رڼا کې د هغه تر نظر لاندې اجرا کېږي. هر ولایت

په ولسواليو وېشل شوی دی. ولسوالي د ولسوالانو له خوا اداره کېږي. زموږ د هېواد مشهور ولايتونه له: کابل، هرات، کندهار، بلخ، کندز، ننگرهار، غزني او هلمند څخه عبارت دي. د افغانستان له لويو ښارونو څخه يو هم د کابل ښار دی چې د گران هېواد پلازمېنه ده. جمهوري رياست، ملی شورا، ستره محکمه، وزارتونه، لوی علمي او فرهنگي مرکزونه په پلازمېنې کې موقعيت لري.



## فعاليت

زده کوونکي دې په پنځو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د هېواد د شمال ، سوېل، ختيځ، لوېديځ او مرکزي ولايتونو نومونه واخلي او د نقشې پر مخ دې نورو ته وښيي.



## ځواب ورکړئ

١- افغانستان څو ولايتونه لري؟

٢- ولايتونه د چا له خوا اداره کېږي؟

٣- د افغانستان د پلازمېنې نوم څه دی؟ هغه د نقشې پرمخ وښيئ؟



## کورنی دنده

د افغانستان نقشه رسم کړئ او بيا پکې د کابل، کندهار، مزار شريف، هرات، ننگرهار، پکتيا او هغه ولايت چې تاسو په کې اوسيږئ په نښه کړئ.

# د افغانستان دين، ژبه او نفوس

پوښتنې

-په لاندې انځور کې څه وينئ؟

- ستاسو په آند! د افغانستان خلک په کومو ژبو خبرې کوي؟



د افغانستان د خلکو دين اسلام دی. د اسلام سپيڅلی دين د مسلمانانو د دريم خليفه، حضرت عثمان (رضي الله عنهُ) په مهال افغانستان ته راورسيد او زموږ خلک، پرې مشرف شول. له مسلمانانو سربېره يو لږ شمېر هندوان او سکهان هم زموږ د هېواد اوسېدونکي او د نفوس يوه برخه ده.

په افغانستان کې له ديرشو څخه زياتې ژبې شته، چې زموږ د هېواد په بېلا، بېلو سيمو کې پرې خلک خبرې کوي؛ له هغې جملې څخه پښتو او دري د دولت رسمي

ژبې دي. ازبکي، ترکمني، پشه يي، بلوڅي، نورستاني، پاميري او گجري ژبې هم د هېواد په هغو ځايونو کې چې زيات شمېر وګړي پرې خبرې کوي، د دريمو رسمي ژبو په توګه منل شوي دي.

د افغانستان د وګړو شمېر شاوخوا (۳۰) ميليونه اټکل شوی دی.

د افغانستان خلک مسلمانان، په خپلو کې ورونه او سره برابر دي.



## فعاليت

په ډلو کې د افغانستان د خلکو د دين او ژبو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱-زموږ د هېواد د ځينو ژبو نومونه واخلئ؟

۲- د افغانستان د خلکو د نفوس په اړه څه پوهېږئ؟

۳- زموږ د ګران هېواد خلک څه وخت د اسلام په دين مشرف شول؟



## کورنۍ دنده

د افغانستان د خلکو د دين او ژبو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د افغانستان غرونه

**پوښتنه**

**ستاسو په فکر، په افغانستان کې د غرونو شتون څه اهمیت لري؟**



**افغانستان یو غرنی هېواد دی، چې د مساحت $\frac{۱}{۳}$ برخه يې لوړو او دنګو غرونو نیولې ده. دا غرونه زیاتره په مرکزي ختیځ او د هېواد په شمال ختیځو سیمو کې پراته دي. په دې سیموکې اقلیم سوړ وي او زیات وختونه په کې واوره اوریږي. زموږ د ګران هېواد د مشهورو غرونو لړۍ له: هندوکش، بابا غر، سپین غر، تورغر، او داسې نورو څخه عبارت دي.**

په هغو غرنیو سیمو کې چې د غرونو، ځمکې او واورو ښویدل او د سیلابونو خطرونه پکې موجود وي باید د اوسیدو ځای غوره نه کړو او د خطر د سیمو په مخ کې نیالګي کینوو.



## فعالیت

په خپلو ډلو کې د غرونو د اهمیت په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱-په یوې سیمې کې د غرونو شتون څه اهمیت لري؟

۲- په غرونو کې واورې د څه شي لامل ګرځي؟

۳- زموږ د هېواد څوومه برخه غرونو نیولې ده؟



## کورنۍ دنده

د غرونو د اهمیت په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# د افغانستان مشهور غرونه

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، د افغانستان کوم غرونه مشهور دي؟**



## د هندوکش د غرونو لړۍ

دغه غر د هېواد له مشهورو او لويو غرونو څخه شمېرل کيږي چې له شمال ختيځ څخه سوېل لوېديځ ته غځېدلی او په لوېديځ هندوکش او ختيځ هندوکش وېشل شوی دی. د سالنگ لويه لار چې د هېواد شمالي سيمې له سوېل سره نښلوي، د همدې غرونو د لړيو په منځ کې تېريږي.

## د بابا غر

دا غر زموږ د هېواد په مرکزي برخو کې پروت دی او له ختيځ څخه لوېديځ ته غځېدلی دی.

## سپین غر

د غرونو دا لړۍ د هېواد په ختیځ کې پرته ده، چې له ختیځ څخه د لوېدیځ په لور غځېدلې ده. شمالي او جنوبي لمنې یې په لویو او ګڼو ځنګلونو پوښل شوې دي. په پورتنیو غرونو سربېره افغانستان نور مشهور غرونه هم لري چې له: فیروز کوه، سیاه کوه، سلېمان غر، د ترکستان تیربند او داسې نورو څخه عبارت دي.




د افغانستان د مشهورو غرونو نومونه واخلئ او په نقشه کې یې وښيئ.




۱-د هندوکش دغرونو لړۍ د افغانستان په کومه برخه کې پرته ده او کومه مشهوره لار له هغه څخه تېرېږي؟

۲- د بابا غر په کوم ځای کې پروت دی او له کومه پلوه اهمیت لري؟

۳- سپین غر د څه شي له امله اهمیت لري؟




د خپلې سیمې د غرونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د افغانستان سيندونه

## پوښتنه

**څه فکر کوئ، سيندونه څه ډول منځته راځي؟**



**افغانستان د جغرافيايي موقعيت له پلوه چې له سمندرونو څخه لېرې پروت دی.**

**زموږ په هېواد کې اورښت يوازې د ژمي په موسم او د پسرلي په لومړيو وختونو کې کېږي.او د هېواد په لوړو او غرنيو سيمو کې زېرمه کېږي او د کال په اوړدو کې په تيره بيا د اوړي په موسم کې د اوبو لويې سرچينې جوړوي او سيندونه منځته راوړي.**

له دې امله زموږ د سيندونو اوبه د پسرلي په موسم کې ډېرې وي. زموږ د هېواد مشهور سيندونه له: آمو، هلمند، کابل، هريرود، مرغاب، کونړ او داسې نورو څخه عبارت دي. د هېواد د سيندونو له اوبو څخه د کرنې، برېښنا، د ژرندو د ګرځېدلو، کب نيولو او نورو برخو کې ګټه اخېستل کېږي.

زموږ د هېواد اوبه د دښتو په خړوبولو د برېښنا د بندونو په جوړولو، د کبانو د روزنې د پروژو او د ژوند د چاپېريال په سمسورتيا کې ډېرې آسانتياوې رامنځته کوي.

د يادونې وړ ده چې په خوړونو او هغو ځايونو کې چې د سيلابونو خطر وي د اوسېدلو ځای غوره نه کړو او د سېلابونو په مهال ځان خوندي سيموته ورسوو.




په خپلو ډلو کې د هېواد د سيندونو د اهميت او ګټو په اړه خبرې وکړئ.




لاندې جملې په خپلو کتابچو کې پوره کړئ

۱- سيندونه د خلکو د اړتياوو په پوره کولو کې ډېر.................................. لري.

۲-د سيندونو له اوبو څخه سربېره د (.......................................)کې ګټه اخيستل کېږي.




د سيندونو د اهميت او ګټو په اړه څو کرښې خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د افغانستان مشهور سيندونه

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، زموږ د هېواد د سيندونو له اوبو څخه سمه گټه ترلاسه شوې ده؟**




## د آمو سيند

**د کوچني پامير د زرقول جهيل له سيمې څخه سرچينه اخلي. د افغانستان له پولو څخه تېرېږي او د ارال په سمندرگي کې توييږي. دا سيند له افغانستان سره د تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان د هېوادونو ترمنځ گډ سرحد جوړوي. د کوکچې او کندز سيندونه د هغه له مرستيالانو څخه شمېرل کېږي.**

**د هلمند سيند: د هلمند سيند د هېواد له لويو او اوږدو سيندونو څخه دی چې د پغمان له غره څخه سرچينه اخلي. د کجکي د برېښنا بند پر دې سيند جوړ شوی**

دی، چې په زرګونو جریبه ځمکه خړوبوي او په پای کې د هلمند په هامون کې توییږي. د ارغنداب سیند د هغه له مرستیالانو څخه دی.

**د هریرود سیند:** دغه سیند د بابا د غره له لویدیځ څخه سرچینه اخلي. له ختیځ څخه د لویدیځ په لور بهیږي. د هرات ولایت د ځمکو له خړوبولو څخه وروسته له هغه ولایت څخه تیریږي او د افغانستان او ایران ترمنځ طبیعي پوله جوړوي.

**د کابل سیند:** د پغمان له غره څخه سرچینه اخلي او له لویدیځ څخه ختیځ لورته بهیږي. کله چې د کابل له ښار څخه تیر شي د لوګر، پنجشیر، لغمان(د الیشنګ، الینګار) او د کونړسیندونه ورسره ګډیږي چې په پای کې په اټک کې د سند له سیند سره ګډیږي. د دې سیند په اوږدوکې د ماهیپر، نغلو، سروبي او درونټې د برېښنا بندونه جوړ شوي دي چې د دې له اوبو څخه د خړوبولو او له برېښنا څخه یې په کابل، ننګرهار او لغمان کې ګټې اخیستل کیږي.



### فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو کې د نقشې له مخې د یوه سیند په اړه خبرې وکړي.



### ځواب ورکړئ

۱- د هلمند سیند له کوم غره څخه سرچېنه اخلي او په پای کې چېرته توییږي؟

۲-د آمو سیند له کوم ځای څخه سرچېنه اخلي او چېرته توییږي؟

۳- د هغو بندونو نومونه واخلئ، چې د کابل پر سیند باندې جوړ شوي دي.



### کورنۍ دنده

د خپل ولایت د سیندونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ او ووایاست چې د کال په کوم موسم کې یې اوبه ډېرې وي.

# زموږ نړۍ

**د څپرکي موخې**

- د نړۍ له وچو سره به پېژندګلوي ومومي.
- د آسیا او اروپا وچې به وپېژني.
- د آسیا او امریکا وچې به د نقشې پرمخ وښودلای شي.
- د آسترالیا او انتارکتیکا لویې وچې به د اقلیم له پلوه یو د بل سره پرتله کړای شي.
- هند سمندر ته تر ټولو نژدې هېوادونه به په نقشه کې وښودلای شي.
- د دې څپرکي له لوستونو سره به ډېره مینه پیدا کړي.

پنځه دېرشم لوست

## لويې وچې (قارې)

**پوښتنه:** ستاسو په آند، لويه وچه (براعظم) څه ته ویل کېږي؟




د ځمکې د کُرې زیاتره برخه اوبو نیولې ده او لږه برخه يې وچه ده. لويې وچې د قارې (براعظم) په نوم یادېږي چې دځمکې پر مخ د هغوی شمېر شپږو ته رسېږي. په هره لويه وچه کې یو شمېر لوی او کوچني هېوادونه پراته دي. لويې وچې له آسیا، امریکا، افریقا، اروپا، آسترالیا - اوقیانوسیه او انتارکتیکا څخه عبارت

دي. د انتارکتیکا له لویې وچې څخه پرته چې ډېره سړه ده، د نړۍ نورې وچې د اوسیدو او د انسانانو د استوګنې ځایونه دي.

زموږ ګران هېواد افغانستان، چې څو زره کلن فرهنګي او مدني تاریخ لري، د آسیا د لویې وچې په سوېل کې پروت دی.



## فعالیت

په ډلو کې د نقشې له مخې د نړۍ لویې وچې وښیئ.



## ځواب ورکړئ

سم ځواب غوره کړئ

۱-زموږ هېواد په کومه لویه وچه کې پروت دی؟

الف: امریکا

ب: آسیا

ج: افریقا

د: اروپا

۲- انسانان په کومه لویه وچه کې په عادي توګه ژوند نشي کولای؟



## کورنۍ دنده

د درسي کتاب له نقشې څخه په ګټې اخیستو، له لویو څخه د کوچنیو په لور په ترتیب سره د نړۍ د شپږو وچو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ

# د آسیا وچه

## پوښتنه

څه فکر کوئ، په نړۍ کې ترټولو لويه او له نفوس څخه ډکه لويه وچه کومه ده؟




د آسیا سیاسي نقشه

**د نفوس او مساحت د زياتوالي له پلوه د آسيا لويه وچه د نړۍ له لويو وچو څخه ده.د آسيا لويه وچه د شمال له خوا په شمالي منجمد سمندر، له ختيځ څخه په بحر الکاهل، له سوېل څخه د هند په سمندر او له لوېديځ څخه د اروپا په لويې وچې پورې نښتې ده. د آسيا لويه وچه له دريو خواوو څخه اوبوته او له يوې خوا وچې ته لاره لري. اقليم يې په بېلا بېلو ځايونو کې يو له بل سره توپير لري، د بېلګې په توګه: هغه سيمې چې شمالي قطب ته نژدې دي، اقليم يې سوړ او سويلي برخې يې تود اقليم لري او نورې پاتې سيمې يې معتدل اقليم لري. د**

نړۍ ډېر جګ غرونه یعنې همالیا په دې لویې وچې کې موقعیت لري او مشهور سیندونه یې: آمو، ګنګا، او سند دي.

د آسیا لویه وچه د بشري تمدنونو زانګو ده او د نړۍ د نفوسو څخه ډک هېوادونه، لکه: (چین او هند) په دې لویې وچې کې پراته دي. د دې لویې وچې خلک بېلابېل نژادونه، ژبې او دینونه لري، زیات شمېر مسلمانان د آسیا په لویه وچه کې ژوند کوي. د آسیا په لویه وچه کې ۴۲ خپلواک هېوادونه موجود دي، لکه: افغانستان، سعودي عربستان، هند، ایران، جاپان، چین، پاکستان، ترکیه، روسیه او نور. د مسلمانانو مقدس ښارونه، لکه: مکه معظمه، مدینه منوره او بیت المقدس په دې لویې وچې کې پراته دي.



## فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو کې د آسیا د لویې وچې په اړه خبرې وکړي.



## ځواب ورکړئ

د نړۍ نقشې ته وګورئ او د لاندېنیز جملو تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

۱- د آسیا لویه وچه د سوېل له خوا په .......... سمندر او د ختیځ له خوا د.......... سمندر، د شمال له خوا په .......... او د لوېدیځ له خوا په .............. نښتې ده.

۲-د آسیا د څو هېوادونو نومونه واخلئ؟

۳- د آسیا په لویه وچه کې اقلیم (آب او هوا) څرنګه دي؟



## کورنۍ دنده

د خپل کتاب د نقشې په مرسته د یو څو لویو آسیایي هېوادونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په ټولګي کې یې نومونه واخلئ.

# د اروپا وچه

## پوښتنه

**څه فکر کوئ، د اروپا لویه وچه د آسیا د لویې وچې په کومه خوا کې پرته ده؟**




**د اروپا لویه وچه د آسیا د لویې وچې سره نښتې ده؛ له دې امله ځینې جغرافیه پوهان دواړه لویې وچې د یوریشیا په نوم یادوي.**

**اروپا د شمال له خوا په شمالي منجمد سمندر، د ختیځ له خوا د آسیا د لویې وچې، د سهیل له خوا د مدیترانې سمندرګي او د لوېدیځ له خوا د اطلس له سمندر سره نښتې ده.**

د اروپا د لویې وچې زیاتره برخې په معتدله اقلیمي سیمه کې پرتې دي او ډېرې برخې یې ښه اقلیم لري.

د آلپ او پیرینه غرونه د هغې له نامتو غرونو څخه دي. د دې غرونو په منځ کې ښکلې ځړوبې او له اوبو څخه ډک سیندونه شته چې وربانديې لوی بندونه جوړشوي دي او له برېښنا څخه یې په صنعت او له اوبو څخه یې په کرنه کې کار اخېستل کېږي. د اروپا مشهور سیندونه د دانیوب او والګا سیندونه دي.

اروپا کوچنۍ وچه ده؛ خو ډېر نفوس او معتدل اقلیم لري. په دې وچه کې علم، تکنالوجۍ او صنعت ډېر پرمختګ کړی دی. د اروپا په لویه وچه کې ۴۴ هېوادونه شتون لري، لکه: آلمان، فرانسه، انګلستان، هالیند، ایتالیا، یونان .... او نور.



فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو کې د اروپا د لویې وچې په اړه خبرې وکړي.



ځواب ورکړئ

۱_ځینې جغرافیه پوهان د اروپا اوآسیا لویې وچې په کوم نوم یادوي؟

۲_د اروپا د وچې ختیځ پلو ته کومه وچه پرته ده؟

۳- د اروپا د دریو هېوادونو نومونه واخلئ؟



کورنۍ دنده

د نقشې له مخې د اروپا د لسو هېوادونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د افریقا وچه

## پوښتنه

څه فکر کوئ، د افریقا لویه وچه د آسیا د لویې وچې کومې خواته پرته ده؟




د افریقا د لویې وچې سیاسي نقشه

د افریقا وچه د آسیا د وچې جنوب لوېدیځ خواته پرته ده. دا وچه له آسیا څخه د سره سمندرګي په واسطه بېله شوې ده. د افریقا د براعظم شمال خواته د مدیترانې سمندرګی، ختیځ خواته یې د هند سمندر، لوېدیځ لورته یې د اطلس سمندر او سویل خواته یې د هند او اطلس سمندرګډې اوبه واقع دي. دا وچه د لویوالي له پلوه د آسیا او امریکا له وچو څخه وروسته لویه وچه ده. د دې وچې زیاتې برخې توده هوا لري. هغه خلك چې په افریقا کې ژوند کوي زیاتره تور پوستي دي؛

خرنگه چې د افریقا وچه د مکې معظمې لوېدیځ خواته نژدې پرته ده؛ له دې کبله د اسلام دین ډېر ژر په دې لویه وچه کې خپور شو. اوس مهال زیات اسلامي هېوادونه په دې وچه کې واقع دي. نامتو غر یې د اطلس غر دی چې د افریقا په شمال لوېدیځ کې پروت دی، لوی سیندونه یې د نیل او کانگو سیندونه دي. او همدارنگه د نړۍ لوی ریگستانونه چې د صحرای اعظم په نامه یادیږي هم په دې لویه وچه کې پراته دي. په دې لویه وچه ۵۵ خپلواک هېوادونه شته، لکه: مصر، لیبیا، الجزایر، ایتوپي، المغرب، نایجریا او داسې نور.



## فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو کې د نقشې له مخې د افریقا د شمال او ختیځ هېوادونو نومونه واخلي.



## ځواب ورکړئ

لاندې جملې په خپلو کتابچو کې پوره کړئ:

۱- د افریقا لویه وچه د (                    ) په واسطه له آسیا څخه بېله شوې ده.

۲-د افریقا د لویې وچې شمال خواته (                    ) پروت دی.

۳- د افریقا د څو هېوادونو نومونه واخلئ؟



## کورنۍ دنده

د افریقا نقشه په ځیر وگورئ د هغې څلور خواوې او د هېوادونو موقعیت یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د امریکا وچه

## پوښتنه

**ستاسو په آند، د امریکا لویه وچه له څو برخو څخه جوړه شوې ده؟**




**د امریکا لویه وچه چې له آسیا څخه وروسته د نړۍ لویه وچه ده دا لویه وچه د کرستوف کولمبوس په نامه یوه سړي چې په ۱۴۹۲ میلادي کال کې د هندوستان په لټه کې و، په ناڅاپي توګه د امریکا ځمکو ته ورسېد او امریکایې کشف کړه. د امریکا لویه وچه د ختیځ له لوري د اطلس له سمندر، د لوېدیځ له لوري د آرام**

سمندر (بحر الکاهل)، د شمال له لورې د شمالي کنګل سمندر او د سویل له لوري د اطلس او آرام سمندرونو له ګډو اوبو سره نښتې ده. د شمالي امریکا لوی غرونه د راکي او په جنوبي امریکا کې د اندیزد غرونو په نامه یادیږي. د امریکا د لویې وچې سیندونه په شمالي امریکا کې د مسي سیپي سیند او په جنوبي امریکا کې د امازون سیند دی.

دا قاره په دریو شمالي، مرکزي اوجنوبي برخو وېشل شوې ده چې ۳۵ خپلواک هېوادونه لري. په شمالي امریکا کې دوه لوی هېوادونه کاناډا او د امریکامتحده ایالتونه پراته دي.

د مرکزي امریکا ډېر مهم هېوادونه مکسیکو، نیکاراګوا او پانامه دي.

د سویلي امریکا ډېر مهم هېوادونه: برازیل، ارجنټاین، چیلي او پیرو دي.



## فعالیت

زده کوونکي دې په ډلو کې د نقشې له مخې د امریکا د لویې وچې څلور خواوې او د هغې ځینې مهم هېوادونه په نښه کړي.



## ځواب ورکړئ

۱_ د امریکې لویه وچه په کوم کال کې او چا کشف کړه؟

۲_ د امریکا متحده ایالات او کاناډا د امریکا د لویې وچې په کومه برخه کې پراته دي؟

۳- د امریکا لویه وچه د کومو سمندرونو په واسطه د آسیا، اروپا او افریقا له وچو څخه جلا شوې ده؟



## کورنۍ دنده

د کتاب له نقشې څخه په ګټې اخېستنې سره د امریکا د وچې د څو هېوادونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# دآستراليا او اوقيانوسيې وچې

**پوښتنه**

**ستاسو په فکر، دآستراليا او اوقيانوسيې لويې وچې په کومه خوا کې پرتې دي؟**




**د آستراليا او اوقيانوسيې لويه وچه له يوه لوی ټاپو او يو شمېر کوچنيو ټاپوګانو څخه جوړه شوې ده. د آستراليا او اوقيانوسيې لويه وچه له څلورو خواوو څخه د سمندرونو په واسطه احاطه شوې ده.**

**لوېديځ ته يې د هند سمندر، ختيځ او شمال خواته يې بحر الکاهل او جنوب خواته يې د هند سمندر او آرام سمندر ګډې اوبه پرتې دي. د دې وچې شمال**

لوېديځ ته نژدې هېواد د اندونيزيا اسلامي جمهوريت پروت دی.

آستراليا، چې د اوقيانوسيې لوی ټاپو دی، يو خپلواک هېواد دی. د دې وچې ټول هېوادونه د ټاپو په څېر د سمندرونو په منځ کې پراته دي. د آستراليا او اوقيانوسيې د لويې وچې ډېر مهم هېوادونه د آستراليا هېواد، فيجي، نوی زيلاند او نور دي.



## فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو کې د کتاب له نقشې څخه په ګټې اخېستلو سره دآستراليا او اقيانوسيې د هېوادونو نومونه په نښه کړئ.



## ځواب ورکړئ

۱-ولې د دې قارې هېوادونه د نورو وچوو هېوادونو په څېر يو د بل په څنګ کې پراته نه دي؟

۲_ آستراليا ته نژدې هېواد څه نومېږي؟

۳- د دې وچې د ځوهېوادونو نومونه واخلئ او د نقشې پرمخ يې پيدا کړئ؟



## کورنی دنده

د کتاب د نقشې له مخې د آستراليا او اقيانوسيه د هيوادونو نومونه په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# انتارکتیکا (سویلي قطب)

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، په سوېلي قطب کې کومه لویه وچه پرته ده؟**




**په سویلي قطب کې د انتارکنیکا وچه**

**انتارکتیکا د ځمکې د کُرې شپږمه لویه وچه ده، چې د ځمکې د کُرې په سوېلي قطب کې پرته ده.**

**دا قاره د آرام سمندر، د هند سمندر او اطلس سمندر د ګډو اوبو په منځ کې پرته ده. انتارکتیکا ته تر ټولو نژدې هېوادونه: نوی زیلاند، آسترالیا او د ارجنټاین هېوادونه دي.**

**په دې وچه کې شپږ میاشتې ورځ او شپږ میاشتې شپه وي. هوا یې ډېره سړه**

ده او انسانان د تل لپاره هلته ژوند نشي کولای پوهان او عالمان د دوبي په موسم کې د علمي تحقیقاتو او څېړنو لپاره انتارکتیکا ته ورځي.



## فعالیت

په ډلو کې د لوست د مفهوم په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱-ولې د تل لپاره انسانان په سویلي قطب یا انتارکتیکا کې ژوند نشي کولای.

۲-انتارکتیکا دکومو سمندرونو په منځ کې پرته ده؟ نومونه یې واخلئ.

۳- هغه هېوادونه چې انتارکتیکا ته نژدې دي نومونه یې واخلئ.



## کورنۍ دنده

د انتارکتیکا نقشه په خپلو کتابچو کې رسم کړئ.

# سمندرونه

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، په نړۍ کې څو سمندرونه شته.**




**هغه تروې اوبه چې د ځمکې د سطحې په پراخو او ټیټو برخو کې موجودې دي د سمندر په نامه یادېږي. د ځمکې د مخ په سلوکې ۲۹ وچه او په سلوکې ۷۱ یې اوبه دي. ځمکه ډېر لوړ او ژور ځایونه لري. چې ټیټې برخې یې اوبو نیولي او لوړې برخې یې وچې دي. څرنگه چې په سمندرکې د سړک جوړولو مصرف نشته، بېړۍ گانې چې هر لوري ته وغواړي تگ را تگ کولای شي او په یوه بېړۍ کې د څو لاریو مالونه لېږدول کېږي، نو له دې کبله د سوداگریزو مالونو کرایه د سمندر له لارې ارزانه ده.**

د سمندرونو اوبه تروې دي، په ځينو هېوادونو کې د سمندرونو اوبه تصفيه کوي او څښلو ته يې برابر وي، د سمندر له اوبو څخه د خوړو مالګه هم لاس ته راوړي، د ځينو سمندرونو له ژورو برخو څخه نفت او ګاز هم راباسي، ځينې خلک د سمندرونو په غاړو کې د کبانو د نيولو په کسب بوخت دي.

په نړۍ کې څلور لوی سمندرونه شته، چې د آرام سمندر (بحرالکاهل)، د اطلس سمندر، د هند سمندر او د شمالي منجمد سمندر دی.




په ډلو کې د نړۍ د لويو سمندرونو په اړه خبرې وکړئ.




د لاندې جملو تش ځايونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

۱- (            ) په سلوکې د ځمکې مخ وچه ده؟

۲- د نړۍ سمندرونه (                    ) نومېږي؟

۳- (            ) په سلوکې د ځمکې مخ په اوبو پوښل شوی دی؟




د سمندرونو په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.

# بحر الکاهل او د اطلس سمندر

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، بحرالکاهل او د اطلس سمندر کومې وچې سره بېلوي؟**




## بحر الکاهل

بحر الکاهل یا آرام سمندر د نړۍ تر ټولو لوی سمندر دی چې شمال ته یې د بېرنګ آبنا، سویل ته یې د انتارکتیکا وچه، ختیځ ته یې د امریکا وچه او لویدیځ لورته یې د آسیا او آسترالیا وچې پرتې دي. آرام سمندر د آسیا او آمریکا لویې وچې سره بېلوي.

## اطلس سمندر

په نړۍ کې دويم لوی سمندر د اطلس سمندر دی. دا سمندر د لوېديځ له خوا د امريکې وچې او د ختيځ له خوا د اروپا او افريقا وچو احاطه کړی دی. شمال لوری يې له شمالي منجمد سمندر او سوېل يې د انتارکتيکا له وچې سره نښتی دی. د اطلس سمندر د اروپا او افريقا وچې د امريکا له وچې څخه جلا کړي دي.



### فعاليت

زده کوونکي دې په ډلو کې د کتاب د نقشې له مخې د بحرالکاهل او د اطلس سمندر په اړه خبرې وکړي.



### ځواب ورکړئ

۱-په ترتيب سره د نړۍ د لويو سمندرونو نومونه واخلئ.

۲-د اطلس سمندر کومې وچې يو له بل څخه جلا کوي؟

۳- د بحرالکاهل په شمال کې کومه آبنا پرته ده؟



### کورنۍ دنده

د کتاب د نقشې له مخې د بحرالکاهل او اطلس د سمندر موقعيت په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د هند او د شمالي منجمد سمندرونه

پوښتنه

ستاسو په فکر، زموږ هېواد ته ډېر نژدې کوم سمندر دی؟




زموږ هېواد ته ډېر نژدې سمندر د هند سمندر دی. د هند سمندر له شمال څخه د آسیا له لویې وچې، له سوېل څخه انتارکتیکا، له لوېدیځ څخه د افریقا له وچې او له ختیځ څخه آستراليا، اوقیانوسیې او له آرام سمندر سره نښتی دی. د آسیا په براعظم کې د هند د سمندر ساحلي هېوادونه پاکستان، هند، بنګله دېش او اندونیزیا دي.

شمالي منجمد سمندر ډېر کوچنی سمندر دی چې د آسيا، اروپا او امريکا د وچو په شمال کې يعنې په شمالي قطب کې پروت دی،د جنوبي قطب پرخلاف چې وچه ده شمالي کنگل سمندر تل کنگل وي. د شمالي کنگل سمندر ساحلي هېوادونه روسيه، ناروې او کانادا دي.





## فعاليت

د هند د سمندر شمالي هېوادونه او د شمالي منجمد سمندر جنوبي هېوادونه په نقشه کې پيدا کړئ او ټولگيوالوته يې وښيئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د هند سمندر د ځمکې په کومه برخه کې پروت دی؟

۲- شمالي منجمد سمندر د ځمکې په کومه برخه کې پروت دی؟

۳- د هند سمندر د څو ساحلي هېوادونو نومونه واخلئ؟



## کورنۍ دنده

د هند سمندر او د شمالي منجمد سمندر د ساحلي هېوادونو نومونه په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# نهم څپرکی

## د ځمکې کُره

**د څپرکي موخې**

. ځمکه او د هغې شکل به وپیژني.
. د استوا کرښې او د هغې د موقعیت سره به بلدشي.
. د طول البلد او عرض البلد په مفهوم به پوه او د هغوی ترمنځ به توپیر وکړای شي.
. د ځمکې وضعي او انتقالي حرکتونه به تشریح کړای شي.
. د دې څپرکي د لوستونو له مفهوم سره به ډېره لېوالتیا پیدا کړي.

پنځه څلویښتم لوست

## ځمکه او د هغې شکل

**پوښتنه:** ستاسو په فکر، ځمکه چې موږ د هغې پرمخ ژوند کوو، څه ډول شکل لري؟



ځمکه چې موږ د هغې پرمخ ژوند کوو، یو څه کُروي بڼه لري. لومړنیو انسانانو داسې فکر کاوه چې ځمکه هواره ده، پخوانیو هندیانو ځمکه د یوې پاڼې او یا تختې په څېر ګڼله، چې د یوه فیل پر شا باندې پرته ده. بابلیانو ځمکه

هواره ګڼله. د لومړي ځل لپاره یو عالم فیثاغورث د ځمکې په کروي والي باندې وپوهید. نن ورځ د علومو د پرمختګ له مخې دا ثابته شوې ده چې ځمکه کروي ده او د خدای (جَلَّ جَلاَلُه) په قدرت سره په هوا کې موقعیت لري.



## فعالیت

په ډلو کې د ځمکې د جغرافیایي کُرې پرمخ د نړۍ وچې او سمندرونه وښیئ.



## ځواب ورکړئ

لاندې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ.

۱- د ځمکې شکل کابو.................................................. دي.

۲- د لومړي ځل لپاره یو عالم ............................ د ځمکې په کروي والي باندې وپوهېده.

۳- د ځمکې کره چېرته موقعیت لري؟



## کورنۍ دنده

د ځمکې کره په خپلو کتابچو کې رسم کړئ.

# د استوا کرښه

**پوښتنه**

**نقشې ته وګورئ، د استوا کرښه د ځمکې د کُرې پرمخ څه راښيي؟**




**استوا يوه فرضي کرښه ده چې د ځمکې کره يې په دوو شمالي او سويلي نيمه کره باندې وېشلې ده. د استوا له کرښې څخه تر شمالي قطب پورې شمالي نيمه کره او د استوا له کرښې څخه تر سويلي قطب پورې د جنوبي نيمې کرې په نامه يادېږي.**

**د لمر وړانګې په کال کې دوه ځلې یو وار د وری د میاشتې په لومړۍ ورځ او بله پلا د تلې د میاشتې په لومړۍ ورځ د استوا په کرښې باندې په عمودي ډول لګېږي، چې له دې امله د شپې او ورځې ساعتونه سره برابرېږي یعنې ۱۲ ساعته ورځ او ۱۲ ساعته شپه وي.**

**د استوا کرښې ته د عرض البلد صفر درجه هم وايي.**



## فعالیت

هره ډله دې د ټولګي په مخکې یا د ښوونځي په انګړ کې یوه دایره جوړه کړي. د دایرې په منځ کې دې څو تنه د استوا کرښه داسې تمثیل کړي چې سویلي او شمالي نیمې کرې وښیي.



## ځواب ورکړئ

لاندې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ.

۱- هغه فرضي کرښه چې ځمکه په دوو شمالي او جنوبي برخو وېشي د............... په نامه يادېږي؟

۲- د استوا شمالي برخې د........................................ په نامه یادېږي؟

۳- د استوا جنوبي برخې د........................................ په نامه یادېږي؟



## کورنۍ دنده

د انځور له مخې د ځمکې کره رسم او په هغې کې د استوا کرښه په نښه کړئ.

# طول البلدونه

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، د طول البلد مبدأ له کوم ځای څخه تېرېږي؟**




**د ځمکې کُره د يوې فرضي کرښې طول البلد په واسطه په دوونيمو ختيځو او لوېديځو کُرو باندې وېشل کيږي چې د طول البلد د صفر درجې په نامه يادېږي. طول البلدونه له شمالي قطب څخه پيل او د استوا پرکرښې باندې په عمودي ډول ترجنوبي قطب پورې غځېدلي دي. د هغوی مبدا د لندن د ښار د ګرنيويچ د طول البلدونو د صفر درجې څخه پيل کيږي. (۱۸۰)**

درجې د ختيځ خواته او (۱۸۰) درجې د لوېديځ خواته پراته دي، چې ټول طول البلد (۳۶۰) درجې کېږي. د طول البلدونو د فرضي کرښو له مخې د هېوادونو او ځايونو وخت او موقعيت ټاکلی شو.



## فعاليت

په ډلو کې د نقشې له مخې د طول البلدونو مبدا وښيئ.



## ځواب ورکړئ

لاندې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ.

۱- هغه فرضي کرښه چې شمالي او سويلي قطب سره نښلوي د.............. په نامه يادېږي.

۲- د ځمکې د کرې پرمخ .............. طول البلدونه رسمېدلای شي.

۳- د طول البلد مبدأ له کوم ځای څخه پيل کېږي؟



## کورنۍ دنده

د ځمکې کُره په خپلو کتابچو کې رسم کړئ او پر هغې کې طول البلدونه وښيئ.

# عرض البلدونه

**پوښتنه**

**د عرض البلد مبدا کومه کرښه ده؟**




**عرض البلدونه هغه فرضي کرښې دي چې مبدأ یې د استوا کرښه ده. دا هغه فرضي کرښه ده چې ځمکه په دوو شمالي او سویلي نیمو کُرو باندې وېشي. د عرض البلد کرښې د موازي کرښو په نامه هم یادوي، ځکه چې تل په موازي شکل پرتې وي او یو بل نه قطع کوي. د عرض البلدونو شمېر (۱۸۰) درجو ته رسېږي چې (۹۰) درجې یې په شمالي نیمه کُره کې او (۹۰) درجې**

نور يې په سويلي نيمې کرې کې پرتې دي. د عرض البلدونو د فرضي کرښو له مخې کولای شو چې د اقليم څرنګوالى او د سيمو موقعيت پيداکړو.



## فعاليت

په ډلو کې د لوست مهم ټکي وليکئ.



## ځواب ورکړئ

لاندې جمله په خپلو کتابچو کې بشپړه کړئ.

۱- هغه فرضي کرښه چې ځمکه په دوو شمالي او سويلي نيمو کُرو باندې وېشي د ......... د مبدأ په نامه يادېږي.

۲- د ځمکې د کرې پرمخ د عرض البلدونو څو کرښې موجودې دي؟

۳- ولې د عرض البلدونو کرښو ته موازي کرښې ويل کيږي؟



## کورنۍ دنده

د ځمکې کُره په خپلو کتابچو کې رسم کړئ او په هغې کې عرض البلدونه په نښه کړئ.

# د ځمکې حرکتونه

**پوښتنه**

**ستاسو په فکر، ځمکه څو ډوله حرکتونه لري؟**




**د ځمکې کُره دوه ډوله حرکتونه لري، چې یو یې د وضعي اوبل یې د انتقالي حرکت په نامه یادېږي.**

## د ځمکې وضعي حرکت

**ځمکه په ۲۴ ساعتونو کې یو وار د خپل فرضي محور پر شاوخوا له لوېدیځ څخه ختیځ ته څرخېږي، چې دې ډول حرکت ته د ځمکې وضعي حرکت**

وایي. په دې حرکت کې د ځمکې بېلابېلې برخې د لمر له مخې تېرېږي او د همدې حرکت له مخې شپه او ورځ او د هېوادونو تر منځ د ساعتونو توپیرمنځ ته راځي.






## فعالیت

په ډلو کې د لوست غوره مطلبونه را لنډ کړئ او یو له بله سره پرې خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

لاندې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ.

۱-د ځمکې کره ........... حرکتونه لري.

۲-ځمکه په ................... یو وار د خپل فرضي محور په شاوخوا څرخي چې دغه حرکت د............... په نوم یادوي.



## کورنۍ دنده

انځورونو ته وګورئ، د هېوادونو ترمنځ د وخت توپیر په هکله څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د ځمکې انتقالي حرکت

پوښتنه: ستاسو په فکر، د ځمکې د کوم حرکت په واسطه د کال څلور فصلونه پیدا کېږي؟



ځمکه پرته له وضعي حرکت څخه، یوبل حرکت د لمر په شاوخوا له لوېدیځ څخه ختیځ ته لري چې د ځمکې د انتقالي حرکت په نامه یادېږي. دا حرکت یو کال یعنې ۳۶۵ ورځې او شپږ ساعته کېږي. د دې حرکت له مخې د کال څلور فصله (پسرلی، دوبی، منی او ژمی) منځته راځي.

د هر څلورو کلونو په تېرېدلو سره، څلورم کال ۳۶۶ ورځې حسابېږي. هغه کال چې ۳۶۶ ورځې وي د کبیسه کال په نامه یادېږي.



## فعالیت

په ډلو کې د ځمکې د انتقالي حرکت په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

لاندې جملې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړئ.

۱- د ځمکې انتقالي حرکت په...................... ورځو کې د لمر په شاوخوا کې ترسره کېږي.

۲- هغه کال چې ۳۶۶ ورځې وي د...................... په نامه یادېږي.



## کورنۍ دنده

د ځمکې د انتقالي حرکت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.